///

## دکتاب ځانګړني


- دکتاب نوم :: مناجاتونه
- شاعر ::حاجي نوراحمد (( قران مل))
- خپرندوی :: غریبک کتابتون
- دچاپ کال :: ۱۳۸۹ لمریز کال دکب میاشت
- دخپرندوی اړیکه:: ۰۷۰۰۳۲٦۰۷۱
- بربښنايي اړیکه ::noorahmad_kakar@yahoo.com

///

# اهدا

دښاد روان ابوالفیض
مولوي عبدالغفار بریالي
روح ته.

# مناچا توته

بسم الله الرحمن الرحيم

ښاغلی الحاج نوراحمد ((قران مل))

دکندهاردځوانو شاعرانو ،ليکوالانو اوڅېړونکو ځخه دی چې زياتي ليکني اوڅېړني يې کړيدي چې لمړی شعري ټولګه اوځيني نور اثار يې چاپ سويدي اوځيني يې ناچاپه پاته دي

پاک خداي (ج) دي توان ورکړي چي دغي مېړنی دغورځنګو،قيامونواونهضتونوپښتو ژبي ته زيات کاراوخدمت وکړي اودغه دحماسوژبه راژوندی کړي اوپه ګډه يې ددنيادپرمختللوژبوپه قطارکښي ودرؤاوپرېنږدوچي زموږ دژبي دادب اوفرهنګ دښمنان دي زموږ دادبي اوفرهنګي بهيردپيشرفت انکشاف اوپرمختګ مخه ونيسي موږ دپښتني ټولني دهرپښتون څېړونکی،شاعر،ليکوال اواديب دا ايماني اووجداني دنده ده چي دخپلي مورنی ژبي دبقااوپرمختګ لپاره لستوڼي راونغاړي تحقيق،څېړنه ،ژباړي اوپخپل مورنی ژبه علمي،ادبي،تاريخي اواساسي اثاروليکي اوکلتوراوفرهنګ په غني کړي خوالحمدالله اوس په پښتني ځوانانوکښي داحس پيداسويدی چي دخپل فرهنګ ثقافت اوادب دبهبوداوپرمختګ دپاره يې

# مناجا تونه

شـپه اوورځ پرځـان یـوه کړېـده چـي یـو ددغوځوانـو لیکوالـو څخـه الحـاج نوراحمـدقران مـل دی، چــي دخپلـي مـورنۍ ژبـي [پښـتو]په چوپړپسـي يې پښـې لځي کړېدي لیکني اوڅېړني کوي .

الحـاج قـران مـل دمناجـاتو یـوه شـعري ټولګـه نـوې لیکلې ده،اوځوورځي مخکـي يې ماتـه راوړه چي یو څه پرولیکم ده(قـران مل)پخپلـه شعري ټولګـه کـي داسي نوښت اونوي ترکیبونـه راوړي وه چي ما په نورو شعري ټولګو کـي نـه وه لیـدلي ،چي ټولـو شـعرونو اونظمونـو يـې مناجـاتي رنګ او خونـد درلود تخیل پېچلي تشـبیهات اواسـتعارونه پکښـي لیدل کیږي دشعر ژبه يې سـاده اوروانـه ده اوپـه ټولـو شعرونو اونظمونو کښي يې دمردفي قـافیې څخه کار اخیستی دی اوپـه ټولـو بیتـو کښـي یـود ((را)) ردیـف کارولی دی

بـل نوښـت چـي مـاد ځـوان شـاعر الحـاج (قـران مـل) پـه شـعرونو کښـي ولیـدی هغـه دقـافیې موضـوع وه،دده ابتکـار داؤچـي ده پـه شـعري ټولګـه کښي قافیه دالفباپه ترتیب یعنـي دالـف څخه بیـا تـر (یا) پوري په ترتیب راوړېده .مثلاً

# مناچا توته

خدایه کړه مې په عمل کې دناسوت را
رشتنوالی پرزړګي دملکوت را
چې ارواه مې ستا دښکلو میلمنه وي ناز
نواز په وزرودجبروت را

په پورته بیتوکښي دقافیې کلمې دادي ((ناسوت، ملکوت اوجبروت)) ((را))چي دقافیوترکلیمو وروسته راغلي دی ردیف بلل کیږي او دغي قافیې ته مردفه قافیه ویل کیږي .

دځوان شاعر، لیکوال اوڅېړونکي حاجی ((قران مل))په اشعارواونظمونوکښي ادبي صنعتونه دورایه څرګندیږي مثلاً

دموسی دعصا غوندي چي لاړښود وي
دایوب استقامت په اهتزاز را
زه خلیل چی دخلیل دلارخلیل سم
دخلیل غوندي په اورکي سرفراز را

په پورتنیو بیتو کښي شاعردتلمیح ادبي صنعت راوړي دی یعني دحضرت موسی (ع) اونمرودو قصې ته یې اشاره کړیده یادابیت چي وایي:

# مناچا تونه

ستادربارکي مي سرشخ په رکوع ځوړ را
په نصیب کي دسلفو مي روغـــــــــــبړ را
په پورته بیتو/ګي طباق یاتضادراغلی دی
چي دشخ اوځوړ کلیمو ترمنځ تضاد یا طباق راغلی دی. قران مل په ځینو بیتو کښي نامانوس کلیمات راوړي دي امکان دي ولري چي الحاج قران مل داکار دقافیې دضرورت په اساس کړي وي نور نو زه خپله لیکنه پر داغه ځاي رانغاړم لمړی ښاغلي الحاج نوراحمد (قران مل) ته ددغي نوي شعري ټولګي مبارکي وایم اوپر قلم دې برکت وي.

په درښښت
استاد حاجي فضل محمد ((پنهان))
کندهار ځلرمه ناحیه ده خواجه
۱۳۸۹\۱۲\۳۱ل م کال

# مناجا تونه

۷۸۶
///

دټول بشریت پلار حضرت ادم(ع) چې له اسمانه مځکې ته راکښته سونوئې دسترښتن دربار ته دامناجات ووایه ربناظلمناانفسناوان لم تغفرلناوترحمنالنکونن من الخسرین ط

ترجمه :اي زما پروردګاره !

((موږ پخپلو نفسونو ظلم کړیدی که چیري ته وموږته بخښنه ونه کړې اوپرموږ رحم ونه وکړې موږ به خامخا له زیان کاروڅخه سو))

حضرت ذکریا (ع) خپل رب ته ویل :

رب لاتذرني فرداً وانت خیرالوارثین ط

اي پروردګاره!

(( ما مه پریږده یوازي ځکه چي ته ئې ښه وارث او وارث جوړونکی))

حضرت یونس (ع) دماهي په نس کي داسي ویل:

لااله الاانت سبحنک اني کنت من الظلمین ط

((نسته دعبادت وړ پرته له تا څخه پاکي ده تالره اوزه یم له هغو کسانو څخه چي پر خپل ځان ئې ظلم کړیدی ))

# مناچا تونه

ټولــو پیغمبرانــو دخپــل ښښــتن څخــه دمناجات په ویلو اودحاجت په غوښتلو خپله بندګي ښکاره کړېده دقرانکریم لمړۍ سورة سورة فاتحه اودهمدې لمړی ایت (الحمد الله رب العلمین) دی

ترجمه :

((ټوله ثنا وصفت دټول عالم وروزونکي لره دی))

دستر او سپېڅلي ښښتن بلیغ اومعجز کلام هم دستر ښښتن په منا جات اوستاینه پیلېږي. همدا راز دپښتنو نیکه بیټ نیکه چي دیوې وني لاندي به ناست ؤ اوخپل لاسونه به ئې خپل ښښتن ته په زاریو لپه کړیوه دامناجات به ئې وایه :

((لویــــه خدایـــــه لویــــه خدایـــــه
ســـتا پـــه مینـــه پـــه هـــر ځایـــه
دلتـــــه دي دغـــــرو لمنـــــــي
زمــوږ کــږدۍ دي پکښــي پلنــي
داوګـــــړي ډیــــر کــــړي خدایـــــه
لویه خدایه لویه خدایه))

دپښتنو دکلاسیکي اومنځنۍ دورې شاعرانو خپل دشعر دیوانونه دلوی ښښتن په مناجات راپیل کړ

# مناجا توته

ي دي چي دځینو شاعرانو شعرونه ئې دبېلګو په ډول رااخلو.

حضرت عبدالرحمن بابا

لویه خدایه رحیم ته ئې رحمن ته ئې
مهربان تر مور و پلار پر جهان ته ئې
مه مي باسه ناامیده له درباره
ولي داچي ګدا زه اوسلطان ته ئې

عبدالحمید مومند

الهـــی دمحبـــت ســـوز وګـــداز را
پـــه دا اور کـــي دســـهي ســـمندر ســـاز را
تـــن پـــرور بلبـــل دي عـــیش کانـــدي پـــه ګلـــو
پروانـــه لـــره پـــروار زمـــا پـــرواز را

احمد شاه بابا

اوس زه ســـتا کـــوم ثنـــا
اي فریـــادرس شـــا هـــا
لاس پـــر ســـر درتـــه ولاړیـــم
یـــار لـــه مـــا مـــه کـــړې جـــدا

پیرمحمد کاکړ

الهـــي توحیـــد دحمـــدو دثنـــا را
پـه ثنـا کښـي تـر بلبـل ژبـه ګویـا را
منـور مـي زړه پـه نـور دمغفـرت کـړه

# مناجا ټوټه

په تاریکه توره خونه کي رڼا را

شمس الدین کاکړ
///
ربه ستا په حمد ګویا لرې زبان زما
ښایسته کړې په ثنا صفت بیان زما
په تحمید مي آئینه دزړه صیقل کړه
ګوندي مخ پکښي ځرګند سي دجانان زما

میرزا حنان بارګزي

الهي دمحبت په اور کي توان را
سمندر رنګه دپټې خولي بیان را
کل سختۍ مي له زړه وباسې قادره
لکه زلفي دخوبانو زړه پریشان را

مولانا عبدالغفار بریالی
باري خوله مي کړې ګویاپه مناجات
رانازل کړې ستا دفضل برکات
دځګرداغ مي ډېوه دلمرپشان کړې
چي په ووینمه ارض وسماوات

ځوان شاعر اولیکوال نوراحمد ((قران مل))
خپله همدا شعري ټولګه هم له پیله تر پایه په بیلا بیلو قافیو ښکلو ترکیبو دستر اوخلاق ځښتن (ج) چي دمنا جاتو اوعباداتو لایق دی په مناجات ترتیب کړېده قران مل

# مناجا توته

دنـوو الفـاظو پـه اوډون اودنوو کليمـاتو پـه کـارولو ځانتـه دشعر ښېله لاړ اخيستې لکه وايې چي :

قـران مـل پـه بنـدګـۍ درتـه سر خم يم
پاکه مينه پاکـه مېنـه ايمـان روڼ را

په پورته بيت کي دادبي فنونوپه اساس ناقص تجنيس کارول سوی چي مېنه داوسېدلو ځاي دی اومينه په معنوي لحاظ دبندګي اوعبادت لپاره دسر خمېدل دي چي يـوازي او يـوازي دبرحق معبـود لپـاره دي دمناجـات يوښکلی مفهوم افاده کوي اوددې سره سره دپاکي مينـي ذکر چي دخداي درسول (ص) اودمصلحو بندګانو مينـه ده چـي دخـدای ج رضـائې مطلـب دی اودپـاکي مېنـي يادونـه ده چي پـه دنيـا کـي دعبـادت اوبنـدګي ځـاي پـه اخرت کي جنتونـه دي چي دمؤمنـانو غوښـتنه ده اوددې پــه څنــګ کــي دروڼ ايمــان غوښــتنه چــي دصــادقانو مخلصانو اوسپېڅلو مومنانوايمان دی .

بل ځاي وايې :

چــي جــواب (لتسـئَلُنْ) لــره بشــر کــړم
ذکاوت توفيق پـه غيرکـي دشکران را

په پورته بيت کښي قران مل د( الهاکم تکاثر ) ايت تـه پـه خپـل بيـت کـي اشـاره کړيـده لـه خدايـه دخداي دنعمتونو دشکر او توفيق غوښتونکی دی څو دلتسئلن

# مناجا توته

په ورځ ئې دخپلي بندګۍ حق اداکړی وي اودخداي
دنعمتونو کفران ئې نه وي کړي . دقران مل دمناجاتو
همدا ټولګه دپښتو شعري//ټولګو په لړکي دبندګۍ
داوصافو په زېور ښکلي اوله نوښته ډکه ټولګه ده چي په
ويلو ئې ماته دستر صوفي اوعارف مولانا خواجه عبدالله
انصار وُرِسُ سِرَهُ ملفوظات اومناجات راپه زړه سي
اودهغه دعرفان مناظر نظر ته راسي رشتيا هم دقران مل
همدا مناجاتونه هغه بندګي غوښتني اوسوالونه دي چي
دبنده اوالله تر منځ درازونياز اړېکه ټينګه وي اودبنده
دشيطاني غرور اوتکبر کرغېړني لکې دانسان له زړه نه
دنفس په اوبو پرېولي .نورنو تاسو اودقران مل مناجاتونه
په دې هيله چي ژوند تر پايه دبخښونکي او مهربان
څښتن ودربار ته دخپلي بندګۍ اظهار په خضوع او
خشوع وکړي اودهمداسي مناجاتو په ويلو او غوښتلو
ددواړوداړينو سعادت اوشرافت ترلاسه کړي .

په اسلامي او افغاني مينه

روح الله ساقيار(عرفان)

# مناچا تونه

///

بسم الله الرحمن الرحيم ط

درنو لوستونکو!

سلامونه درته وړاندي کوم امید دی چي ددې ټولګي په لوستنه سره مي له دعا هېر نکړی

دځو کلونو را پدې خوا مي له شعر سره خدای پاماني کړېده

ولي دا ټولګه چي مي دوه درې کلونه مخکي سره ترتیب کړېوه دفرصت څخه په ګټه پورته کېدنه مي تر تاسو درنو درورسوله کېدای سي ما هغه شاعرانه انځوګري او تخیل په کښي نوي کار ولی کوم چي دشعر په ساحرانه ژبه کي اړتیا ورته لیده کېږي ولي پر دې بنست چي دیوه سترمفهوم اساسات پکښي ترسترګوکېږي تاسو درنو ته یې وړاندي کوم

سره تر دې چي ماته یې په ټولګۍ کي کوم رسمي درس نه دی را کړي ولي ددرنو لیکوالانو ښاغلي لسانس ښوونکي حاجي فضل محمد ((پنهان))او ښاغلي روح الله (( ساقیار)) چي اوس عرفان تخلص کوي نړۍ ـــ

# مناچا توته

نـړۍ مننـه کـوم چـي داکتـابګوتې پخپلونـازنينو ليکنـو باندي ونازاوه

///

ستاسودرنو دعا په هيله

په مينه

ن قران مل

دافغان يو نايتهد اداري ښوونيز مرکزمسئول

# مناچا تونه

## دلیکوال لنډه پېژندنه

نوم :حاجي نوراحمد (قران مل)

دپلارنوم :حاجي عبدالحمید (کاکړ)

اصلي مینه :کندهار ښار څلرمه ناحیه (بامیزو کوڅه)

اوسنۍ مېنه:کندهارښار لسمه ناحیه (کارته معلمین)

زده کړي :دمتوسطودیني ،اداري،تدریسي زده کړو ترڅنګ په ۱۳۸۲لمریز کال کي دکندهاردعالي دارالمعلیمین داجتماعیاتو په څانګه کي له ۱۴ټولګۍ څخه فارغ

چاپ سوي اثرونه

- ادبي ډېوه نثري تحقیقي لیکنه
- زماغوښتني نثري ټوټه یزه لیکنه
- ایاغریبک پېژنی ؟ نثري تحقیقي لیکنه
- ښکئ نثري تحقیقي لیکنه
- دغریبک خزانه نثري تحقیقي لیکنه
- داوښکو بهیر آزاد اومقیدوشعرونه
- خطاب مقید شعرونه
- دیادونو ځولۍ آزاد اومقید شعرونه
- خطوط واقلام ترتیب ،سمون اوسریزه
- پښتولنډۍ اوغاړي ترتیب ،سمون اوسریزه
- ستوري ستوري یادونه ترتیب ،سمون اوسریزه
- تاند یادونه ترتیب ،سمون اوسریزه

# مناچا تونه

///

- زرورانګه مجله — پرله پسې شپږ ګڼې
- دپاړکوډولۍ — ترتیب ،سمون اوسریزه
- لمرین کلئ — دجاپان هیواد سفرنامه
- ریښتونئ استازئ — نثري لیکنه
- مناجاتونه — همدا لیکنه

# مناجا توته

///

خدایــه ســترګو اوعمــل تــه مــي حیــا را
محبــت پــر لــه پســي پــه هــره ســا را

چي مد هوش په یارانـه ستا کي بې هـوش یـم
داسـي هــوش مــي پــه وجــود کــي هویــدا را

پــه رنــدۍ بــه دمنصــور غونــدي درجــارسم
زمــا پــه برخــه دقاضــي رســا فتــوا را

جــام دجــم کــه مــي دبرخــي طــالع اوســي
ســتا بــې مینــي یــې مســتي ماتــه بــې خــوا را

پــروت قــران مــي پــه ســینه کــي ستامشــهوددي
((قــران مــل)) تــه دجانــان دلار رڼــا را

# مناجا توته

///

خدایه ! ستا وملاقات لره سبب را
دا سبب کې خوار زړګئ مې مظطرب را

چې سم محوه ستا دمیني په جلوه کې
دې جلوې ته مې دمیني خوږ شبب را

دهوس خمارمي وباسې له تنه
په عوض یې دتقواي خواږه عینب را

شور دمیني چې مستېږي په سینه کې
دا سې مینه زما په برخه دادب را

چې حساب یې په دربار دغلامۍ سم
((قران مل)) ته افتخار ددې منصب را

# مناجا توته

///

خدایــه !ژونــدمي دعاشــقو پــه صــفات را
برائـــــت دي پــــر میــــدان دعرصــــــات را

داده ژوند شپېه لـه ژوند هیهات هیهات ځي
فهمیـــد ن یـــې زمــــا دزړه پــــر عرفـــات را

چــي تــرې پورتــه ځــۍ توښــه داخــرت کــړم
را پــــه برخـــــه دجانـــــا ن دلارنعمـــــات را

ځـــالکۍ دخرابـــــات دي نـــــه ړنګېــــــږي
دې جــونګړه کــي ملنــک غونــدي حیـــات را

زړه مــي  بنـدي ستـا دعشـق پـه خـاطرو کـي
((قــران مــل)) تــه دیــارۍ رنګــین صــفات را

# مناجا توته

///

خدایه ! کړه مې په عمل کې د ناسوت را
رېښتینوالي پر زړګي د ملکوت را

چې ارواح مې ستا د ښکلو مېلمنه وي
ناز نواز په وزرو د جبروت را

شکسته نفس مې له طغنه په امان کړې
قبلېدل مې ستا په در کې د هاهوت را

چې یو ځواک سم وساتني د بشر ته
په دریاب کې حوصله دیوه حوت را

((قران مل)) دي سر در ورږ وړي بندګۍ کې
ښه نجات د شیطانۍ له عنکبوت را

# مناجا توته

///

خدایه ! ستا خوښۍ ته سترګي په رنګټ را
چي ژړا یې نه دربږي اسرار پټ را

دایمان د توازن په درلو دوکي
دبري راز مي پر فکر او پر مټ را

خوف رجا مي دمذهب دلار عصا ده
په طاقت کي نور طاقت مي لټ پر لټ را

دامت مسلمه چوپړ لپاره
همرا هان مي همرازان مي سټ پر سټ را

چي مفهوم دسړیتوب انسانان درک کړي
((قران مل)) لره یې پلان دجوړي کرټ را

# مناجا توته

///

خدایه ! ستا داولیاؤ دین میراث را
ټینګ ایمان ووعقیده ائین میراث را

دمحراب دخانقا مي استوګن کړې
سُرخ رویي په اخرت جبین میراث را

دملنګ په ګدړۍ په ژوند قانع یم
دحساب کتاب دفتر مبین میراث را

چي خیرات دي بندګي کي په هر وخت سم
دغازیانو په تولۍ متین میراث را

چي پیوست دقران مخ ومختـه لولم
((قران مل)) یم لوست قران رنګین میراث را

# مناجا توئه

///

لويـــه خدايـــه !دمـــين غونـــدي رواج را
دشـــيطان توطيـــه مـــخ لـــره تـــاراج را

زمـــا دمينـــي دقالـــب زړګـــي خـــالي دي
پـــه کوګـــل کـــي مـــي دمينـــي روڼ ســـراج را

پـــه عـــالم کـــي دناســـوت چـــي دي پيـــدا کـــړم
شـــرافت بـــل ملکـــوت پشـــاني تـــاج را

چـــي ړنـــدې ســـي وارې ســـترګي دخبليســـو
داســي تـوان ، دا ســي ايمـان داســي امــواج را

ســـرمي ايښـــي ســـتا دخوښـــي نـــذرانې تـــه
((قـــران مـــل)) تـــه يـــاد د وصـــل پـــه ســـماج را

# مناجا توته

///

خدایـــه !لاره مــــي تاریکـــه روڼ صـــباح را
لـــه هـــوا او لـــه هـــوس پاکـــه ارواح را

خیــرات خــور دي دجانـــا ن دشـــفاعت ســم
داصـــفت مــــي دزړګـــي پـــه اصـــطلاح را

نــور دي پاتــه وي پــدې نــا بــود جهــا ن کــي
مــا حقیــر تــه پــه خلاصــون کــي زړه مــلاح را

تـــوره تبــه پـــه خســیس غمـــاز اختـــه کـــړه
تـــرې نجـــات ســـتا پـــه کـــرم دیـــو ســیاح را

راز دمینـــــي دي ســــــاتلي وي ترمنځـــــه
((قـــران مـــل)) تـــه خـــوار دعجـــز یـــو فـــلاح را

# مناجا توته

///

خدایه ! زما دښمن پر درد او پر وخواخ را
حوصله ، استقامت تندی پراخ را

چي زبېر غوندي دميني مدرسه سم
دغمازو وربېتېدو ته مي طباخ را

بشارت مي کړې دعقل خانقاه ته
په تميز کي توپيرونه په اِلاخ را

دُرګوهر چي دجانان پښو ته انبار کړم
توان طاقت په جوړېدو دداسي کاخ را

دزړګي قاموس مي ډک په اياتو کړې
وزړګي د((قران مل)) ته سری سوراخ را

# مناجا توته

///

خدایــه ! زړه مـــي لـــه فضـــوله څخـــه وچ را
چـــي رضـــا دي وي پکښـــې هغـــه لالـــچ را

زه عــاجزه بــه هیڅکلــه ځــان خــلاص نکــړم
ســـتا پـــه فضـــل لـــه ګنـــاهو عمـــل بـــچ را

خـــوږ مـــومن مـــي کـــړه پـــه کـــار دمومنـــانو
بـــې ایمـــانو تـــه تونـــد خـــوی پشـــان دمـــرچ را

پـــر حقــه دبــل مـــي لاس ـــــ لاس بــری مکـــړه
چي مي بل خوري توان طاقت مـي دخپـل غـچ را

بنـد پـر بنـد مـي ستا ددر پـه خـاکروب نـازکـه
((قـــران مـــل)) زړه تـــه بـــاور دمینـــي وچ را

# مناجا توته

///

لویه خدایه ! سپېڅ رقیب په فریبو پڅ را
په رنګکټ او په زاریو یې هر ترڅ را

چې ایمان ، وجدان ، او زړه ترې په امان وي
د ټکی ټوله دامونه لڅ پر لڅ را

زما هم ستا بېله رحمته بل څه نسته
د رحمت لړۍ په کور کې او پر کڅ را

سر دې پروت وي ستا د رحم ولیکنې ته
د رحمت باران په ژوند باندې په څڅ را

چې ائینې د دوارو سترګو مې رڼې کا
((قران مل)) ته د رڼا دلارې ترڅ را

# مناجا تونه

///

لويـــه خدايـــه !زړه روښـــانه شـــپه او ورځ را
خولـــه ګويانـــه پـــه ســـتاينه شـــپه او ورځ را

چـي را ټولـه کـرم پـر جـونګړه څـو بـې پـلاره
دا سـي تـوان پـه ژوندانـه کـي شـپه او ورځ را

چـي پـه صـدرالمنتهي کـي يـې بورجـل ؤ
دهغـــه ښـــکلي ګاونـــډه شـــپه او ورځ را

ځـا ن بـه شـمار کـرم دجهـا ن لـه نـازولو
دجانـــا ن دپيـــروي کـــړه شـــپه او ورځ را

((قـــران مـــل)) دقرانـــه دلاري ملـــه تـــه
ځراکـــت او نازېـــده پـــه شـــپه او ورځ را

# مناجا توته

///

خدایه ستا په بندګي مې قمر بند را
وفادار غوندي په لار کې دي سوګند را

چې داپاک زړه مې له غیره په امان وي
دجانان په پاکه مینه زړګی بند را

پیروي مې یې په برخه درفا کړې
په ایثار کې مې دردونه په سمند را

چې بې شانه والا شان وجود دي هست دي
ستا له فضله له رحمته څه درمند را

په دریاب دقرانه مې زړه غوټه کړه
((قران مل)) ته دغفران دکور کمند را

# مناجا ټوټه

///

خدایه ستا په بندګي کي مي کلک هوډ را
په ټولی دصلحاؤ چابک هوډ را

دبې دردو ، دبې دردوکړو لپاره
وصیله نرمه دکړني ځیرک هوډ را

چي خنثي یې کړمه صرف ستاورضاته
دا سي توان مي داسي کړوته هک پک هوډ را

زمرود دي دجانان دلاري کړني
رسېدو تې ددریاب دسمک هوډ را

((قران مل)) به سم سرشاره بندګي کي
لار پر لاره دلتون دمدرک هوډ را

# مناجا توته

///

پاکــــه خدایـــه ! دخلاصــــون دلار ســـفر را
دمـــردودو وړانـــدي زړه کـــي مـــي شـــرر را

چـــي ســـاحل دبنـــدګۍ دي طـــۍ کومـــه
دې تګلـــوري تـــه رښـــتونی دزړه ســـر را

زمـــــا دزړه ددایـــــرې وانحنـــــا تـــــه
پـــاک هـــدف دپـــاک مسـیر پـــه پـــاک وزر را

دمـــادې جهـــا ن دي ليـــري وي لـــه کـــوره
دمعنـــي غونـــدي کچکـــول کـــي مـــي زېـــور را

زړه کچکـــول دلاس پـــه لپـــه التجـــامي
((قـران مـل)) يـم سـتا پـه وړانـدي مي خم سر را

# مناجا تونه

///

ستا دربار کي مي شخ سر په رکوع ځوړ را

پــه نصــيب کـــي  دســـلفو مـــي روغ بـــړ را

چـــي ســـجده مـــي ملکـــوت غونـــدي ادا کـــړم

سُـــــترګي دزړه مـــــي خدايــــه پـــر انګــــړ را

خزانــــې بـــه دي خـــالي نســـي لـــه فيضـــه

مـــا عـــاجز تـــه  رحمتونـــه لـــړ پـــر لـــړ را

چـــي دي نـــه منـــي ،منـــل يـــې زړه کـــي ور کـــړه

نافرمانوتـــــــه لارښـــــــود وړ دچـــــــوپړ را

چي جانان مي شفاعت په ډاډ درخواست کړي

((قـــران مـــل)) لـــره عمـــل دداســـي کـــړ را

# مناجا تونه

///

پاکــه خدایــه ! پــه توفیــق دښــو پــر واز را
دې پــر واز کــي ښــه ملګــري مــي همــراز را

دبــرزخ او ددوږخ لــه اور مــي خــلاص کــړې
ســتا خوښــۍ رضــایت کــي خــوږ اغــاز را

دموســي دعصــا غونــدي چــي لاښــود وي
دایـــوب اســـتقامت پـــه اهتـــزاز را

زه خلیـــل چـــي دخلیـــل دلار خلیـــل ســـم
دخلیـــل غونـــدي پـــه اور کـــي ســـر فـــراز را

دمعـــراج دیـــار دروي پـــه شـــفاعت کـــي
((قــران مــل)) تــه پــاک قــران دزړه دمســاز را

# مناجا توته

///

لویه خدایه !توان په درکي ددر وړ را
چي معموریې په طواف سم سفر سړ را

دبلال پشان احد ـ احد پر ژبه
چي خوښي دي وي پکښې هماغه خوړ را

خاموشي مي دحیا دلار خاصه کړې
دښمنان دسفره په شور او ړوړ را

توان مې مل کړې چي قربان دي له نامه سم
وربتېدو کي دستړیا دوام ډېر لړ را

سر دې پروت وي دجانان په نذرانه کي
((قران مل)) ته حق ندا ، ندا دغوړ را

# مناجا تونه

///

خدایه ! ستا ورضایت ته زیات سپاس را
په ازمون دبندګۍ کي مي سرپاس را

چي توانګرسم په خدمت ستادمخلوق کي
رانه لیري دخناس دترس وسواس را

سترګي کښته په حیا ستا په شکران کي
دغفران زیري له ورایه څخه پاس را

قند نبات چي دپې مخو زړه مجاز وړي
دې دنیا کي له همغو نه ایاس را

پل پرپل مي دجانان دقدمو کړې
((قران مل)) ته دایمان دلار اساس را

///

خدایه ستا په بندګي کي مي زړه سرابښ را
دشـیطان وه وسواسـو لـره نکـرابښ را

چـي توانمنـد سـمه ددیـن پـه لارو چـارو
داسـي هـوډ داسـي ایمـان داسـي تـلابښ را

راځـه سـرچي پورتـه نکـړي نـاروا تـه
رقیبـانو تـه پـه زغـم کـي داسـي ګـوابښ را

دوعتصـمو پـر حبـل مـي لاس برکـړي
سـتاددین دپیروانـو دلاس وابښ را

سـردروړدوي پـه لاره دجانـان کـي
((قـران مـل)) یم پـه خـولګۍ دشـکران غـابښ را

# مناجا توته

///

لویــه خدایــه پــه مغزوکــي ژونــدئ هــوش را
شــاهدان پــه رښــتینواله کـــي ســـروش را

چـــي مطـــرح ســـم پـــه ټـــولي دعاشـــقانو
داسـي درد داسـي لـذت مـي هـوش پرهـوش را

دکـــوثر پـــر ځنـــډه ســـر ورتـــه کچکـــول کـــړم
دا سي رنګ داسـي صـهبا مـي نـوش پرنـوش را

ژونــد پــه لپــه دزمــا ن مــي در ســوغات دي
پــه سُــرور کــي يــې را زونــه دمــئ نــوش را

نذرانـــه دټتـــر غوښـــي پـــه لحـــد کـــي
په تعـويض يـې ((قـران مـل)) تـه ويښ خـروش را

# مناجا تونه

///

خدایه !خوي کي دمومن پرمخ اخلاص را
ددوږخ له اور تونو نو مي تن خلاص را

چي په روي يې ستا په درکي مقبول اوسم
بس رفيق په اخرت ابن وقاص را

په رتبه کي دسلفو دموريدو
ماعاجزه ته يو ښکلي مکان خاص را

چي يې زړونه ستا په نوروي پريوله سوي
داسي خلګ داسي ژمن ښايسته اشخاص را

سرمي خم ستا وخدايي لره پاک خدایه
((قران مل)) يم په شکران مي زړه رصاص را

# مناجا تونه

///

خدایه ! زړه کې دایمان ښایسته بیاض را
وعالم ته دفایدې عمل فیاض را

دا شخ سر مې بېله تا بل ته ټېټ مکړې
بندګی کې یو هوډ من تکړه فراض را

چې دریاب دبندګۍ کې ستړې نسم
داسې تن داسې وجود مې دحواض را

په رنګینو تجلو دطریقت کښې
سرخمې مې وظیفه کې دریاض را

چې توپیر دښو او بدو په کوای سو
((قران مل)) ته دتمیز داسې مقراض را

# مناجا توته

///

خدایه!ستاددین په چاروکي احتیاط را
په تعمیل کي دارکانو زړه محطاط را

کلمه مي دوحدت پر خوله جاري کړه
صادق زړه دساه ختلو پر رباط را

یم روان زه بې توښې دمرګ وخولې ته
ستا پر فضل پر کرم باندي میقاط را

خوار رنځور زړه ته درمل دغفران غوارم
دجانان په پل یوني کي مي صراط را

چي شاهدمي په اخرا کي ستا کلام سي
ما عاجز ته برائت له دېر افراط را

# مناجا تونه

///

خدایه!حق دین مي مدام محفوظ را
ددین چاروکي تعمیل دوام محفوظ را

ستا ددین پر صراط پل مي پورته کړی
وعاجزه ته مقصد مرام محفوظ را

نه دولت او نه متاع لرمه خوښه
له عذابه مي وجود مقام محفوظ را

مسافر دبل ولات سبا پر تلو یم
دقران په ملګري مي کام محفوظ را

بیله اوښکو څه تحفه تاته سوغات کړم ؟
((قران مل)) ته دمطلوب صیام محفوظ را

# مناجا توته

///

خدایه ستا په ارشاداتو مې سماع را
ستا د دین په اموراتو مې اطلاع را

را په برخه کړې برياوې د نېکيو
له انوارو مې ايمان له ره شعاع را

چې سر کښېږدم ستا د دين په چوپړه کې
له بد لارو هم نشينو مې وداع را

په مطاف کې د کعبې مې پښې تناکې
په قسمت کې دلېدلو يې متاع را

د کچکول پشاني لپه در واري ده
((قران مل)) ته د جنت د کښت زراع را

# مناجا توته

///

خدایه ! فکر ته مي هر کله نبوغ را
په نبوغ کي تر هدف پوري بلوغ را

چي مي ژبه په رښتیا ویو ګویا وي
الامان نجات په هر وخت له دروغ را

په چوپړ کي دسلفو چي ستو مان سم
له بد لارو او بد مرغو مي فروغ را

چي وجود مي وقایه له بېرنګۍ سي
ستا په لاره کي دحق دلار دبوغ[1] را

دقران یاري مي تا لره رسد کړي
له مکار شیطانه هر وختي شلوغ را

---

[1] دبوغ : په عربي رنګولو ته وایي

# مناجا ټوټه

///

لویه خدایه! ژوند مي ستا خوښي کي لف را
دایمـان دروښنایي ډېوه پر کف را

چي رټلي وي مدام مي له وجوده
اماره نفس مي مایوسه په غف را

تحرک یې دشیطان ځیني نفي کړه
دشیطان پلان په وړاندي زما اضعف را

په څه ډول چي انسان ته دي ټاکلي
ماعاجز ته په هغه شاني شرف را

دطه او دیس په رفاقت کښي
((قران مل)) ته دیارانو تنظیم صف را

# مناجا تونه

///

خدایه ! زغم او حوصله مې دصدیق را
بې چو پان رمې ته مشر یو طارق را

چې ټارګیټ* دلار روان پر بله خوا کړم
دملعون له لاري بله خوا طریق را

چې راټول دا خوار مومن او لس بل ځل سي
پر داغه سي کړنو ماله توفیق را

چې محروم دي ستا درحم له کرمه
شرمېدلي سپئ غماز لکه زندیق را

دقران دبرکت په استانه کې
((قران مل)) ته دتسلیم ښایسته تشویق را

---

target ټارګیټ دانګیسي ژبې لغت دی چې په پښتو یې دیوه نفره ځانګړي هدف ته ویل کېږي

# مناجا توته

///

لویـــــه خدایـــــه !دربښـــــتون دلار ادراک را
پـــر شـــیطان دغلبـــې مـــي زبـــر ځـــواک را

چـي سـینه مـي پـه ذکـرو نـو سـتا تـوده وي
داســـي تـــوان دشـــکرانې دکړنـــي واک را

دجلیـــل پـــه روي جلیـــل ربـــه غفـــران کـــړه
ســـتاددین پردښـــمن هـــر وختـــي تـــاړاک را

چـي دسـتونزومنځ کـي ژوندپـه حوصـیله کـړم
ددریـاب پـه تـل کـي ژونـد مـي دسـماک را

چـي پـه مغزکـي مـي تـاکلي ځـاي اشـغال کـا
قـران مـل تـه دقـران نصـوص ښـه پـاک را

# مناجا تونه

///

خدایه !بل یو مبتکر سید جمال• را
دمسلم امت یووالی پر او بال را

دمحمد پشان چي زغم لري په زړه کي
وحجاج ته دزمان مو دا سي سیال را

دموسي او دطارق په سر لاری کي
عتبه غوندي اسلام لره جنرال را

چي تحلیل او تجزیه منصفانه کړي
دمعني ، مادې تر منځ مو پوتنسیال را
دډاکټر عبدالغفار په استعداد کي
((قران مل)) ته دساینسي جهان کمال را

---

• په پورته شعرکي یادسوي نومونه عبارت دي له سیدجمالدین افغان ،محمدابن قاسم ،حجاج ابن یوسف ،موسي ابن نصیر ،طارق ابن زیاد ،عتبه ابن مسلم ،ډاکټر عبدالغفار کاکړ ؛ پوتنسیال : دفزیک دقانون هغه ظرفیت چي برقي تفاوت ثابتوي

# مناجا تونه

///

خدایه !خوی،عادت ، کردار نرم صمیم را
بې سالاره قافلې ته پوه زعیم را

چې داخواراو لس را ټول پریوکهول سي
یو ټاټوبي مو ازاد ، اباد ، ترمیم را

چې یوڅوک موبې موجوبه اورکي سوځي
دې دښمن ته دخواریو مو جهیم را

چې سیالان سو دنړۍ داولسونو
هر افغان په ابادیو کي سهیم را

چې منبر، توره ، قلم ،قران نښان وي
قران مل په کلیماتو زړه نعیم را

# مناجا توته

///

خدایه ! سرخم ستاپه درکي پـه هـران را
پـه کچکـول دعـاجزۍ کـي مـي غفـران را

چـي مـخ تـور نسـم پـه لـو ورځ دمحشـر کـي
رڼـې سـترګي پـر دیـدار مـي دجانـان را

چـي جـواب ((لتسـئلن ))لـره بشـپړ کـړم
ذکـاوت ، تمیـز پـه غبـږ کـي دشـکران را

کجـروي را ښخـه لیـري پـه میلـو کـې
مسـتقیم صـراط پـر لاره دخوبـان را

((قـران مـل)) سـرمي قربـان تـر قرانـه کـړه
دقـران پـه لارښـوونه روح روان را

# مناجا تونه

///

خدایه! هرځای کې ددین مختوری کوڼ را
چې ګونګی په خوله وي هروخت یې بې بوڼ را

چې بر لاسی په ایمان سمه پربانـدي
داسې وعظ دخولګی دژبې سوڼ را

تجربه دژوندانه مې سې ځواکمنه
په تحقیق او ځراکت کې دا سې چوڼ را

چې مې غشی دربنتون په نبنان درومي
درشتیا لبندی پشاني ملاد نوڼ را

((قران مل)) په بندګي درته سر خم یم
پاکه مینه ، پاکه مبنه ایمان روڼ را

# مناجا توته

///

خداي دومره توان مي هر وخت پر اوږو را
چي سم ستړی دمخلوق خوی دسړو را

عقاید مي منزه له غیرو ساته
پرایات حدیث توحید یقین دکړو را

پر مذهب مي دنعمان خوشحال زړګی کړه
فکر خلاص له تزلزل او اندېښنو را

دخسیس ابلیس هر وخت ملامتی ته
ژبغړانده خوله ګویا په ګفتګو را

دقران نصوص مي نقش پر هدفو دي
((قران مل)) ته دقران توان دساتو را

# مناجا ته

///

خدايـه !ستا چـي وي رضـا هماغــه ځـاى را
پــه قضــاكي مــي رضـا پـر فكـر و راى را

دمســـلم امـــت پـــدې حســـاس پـــړاو كـــي
دعلـــم پورتـــه كېـــدو تـــه تـــوان همـــاى را

چي لار يـون مـي دهـدف پـر حيـف ولاړ نسـي
دغمـــاز ورتېـــدو تـــه هـــوى و هـــاى را

ســـرمي جـــار ســـتا تـــر ازل ابـــد مالكـــه
خاتمـــه مـــي پر ايمـــا ن دژونـــدون پـــاى را

پرشــتې دســوال جــواب چــي ســي خوشــحاله
اســـاني و((قـــران مـــل)) تـــه هغـــه ځـــاى را